د پوهنې وزارت

# حسن خط




## شپږم ټولگی

د چاپ کال: ۱۳۹۷ هـ.ش.



# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولو کور دی
د پښتون او هزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هېواد به تل ځلېږي
په سينه کې د آسيا به
نوم د حق مو دی رهبر

دا عزت د هر افغان دی
هر بچی يې قهرمان دی
د بلوڅو د ازبکو
د ترکمنو د تاجکو
پاميريان، نورستانيان
هم ايماق، هم پشه يان
لکه لمر پر شنه آسمان
لکه زړه وي جاويدان
وايو الله اکبر وايو الله اکبر

# د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** حسن خط

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د هنر برخې د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارتمنت غړي

**ټولګی:** شپږم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۷ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:** بهیر مطبعه

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

د درسي کتابونو د چاپ، وېش او پلورلو حق د افغانستان اسلامي جمهوریت د پوهنې وزارت سره محفوظ دی. په بازار کې یې پلورل او پېرودل منع دي. له سرغړوونکو سره قانوني چلند کیږي.

# د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او بښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپیځلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي

# فهرست

سرليکونه — مخ

## لومړی څپرکی



## دويم څپرکی

## دریم څپرکی



## دویمه برخه



**یادونه:** د هغو استاذانو لپاره چې د حسن خط د ښودلو د مضمون دنده په غاړه لري، خط د پیژندلو، اقسامو او د ښایسته لیکلو لپاره د وسایلو او لوازمو د پیژندلو په اړه څو ضروري ټکي د کتاب په پای کې ځای پر ځای شوي دي. هیله ده ښاغلي ښوونکي د تدریس پر مهال ترې لازمه گټه واخلي.

# لومړی څپرکی

د کلمو په بیلابیلو ځایونو کې د نستعلیق خط د الفبا تورو د ترکیب او خطاطۍ پر بنې پوهېدل





**لومړی لوست**

## له نورو تورو سره د (ا) توری ترکیب

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه پر نستعلیق خط او کړکي قلم له نورو تورو سره د الف توري د ترکیبونو په ټکو اېښودلو وپوهېږي.

**پوښتنې**

ستاسو په نظر په لاندینۍ جمله کې الف توری له کومو تورو سره ترکیب شوی دی؟
څه فکر کوئ د الف توری د یوې کلمې په کومه برخه او یا یوه جمله له کومو تورو سره یو ځای مشق شوی دی؟



**فعالیت**



د کرسي خط له پاسه په نستعلیق خط او کړکي قلم په پورتنۍ جمله کې الف په پیل او منځ کې له تورو سره ترکیب شوی دی.

**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونه د نستعلیق خط له قاعدې سره سم په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

دويم لوست

## له تورو سره د (ب) توري ترکيب

**موخه:** زده کوونکي به د نستعليق خط له اصولو سره سم له نورو تورو سره د (ب) توري پر ټکو اپښودلو و پوهيږي.

**پوښتنې**

په لاندې جملو کې کومې کلمې د کرسي خط له پاسه پرتې دي؟

په لاندې کلمو کې د (ب) توری څنګه په پيل، منځ او پای کې له نورو تورو سره ترکيب شوی دی؟





**فعاليت**

په پورتني تمرين کې جمله ژوره مطالعه کړئ، وروسته يې پر کړکي قلم د نستعليق خط له اصولو سره سم مشق او تمرين کړئ.

**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونه د نستعليق خط له ځانګړتياوو سره سم په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې تمرين کړئ.

دریم لوست

## له نورو تورو سره د(ج) توري ترکیب

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط پر مخ په نستعلیق خط له نورو تورو سره د (ج) توري د ترکیبونو په خطاطۍ او ټکو اېښودلو پوه شي.

**پوښتنه**
په لاندې نمونه کې د (ج) توري پر قاعدو او ټکو ایښودلو پوهېږئ؟






**فعالیت**
د پورتنۍ نمونې په اړه بحث وکړئ، وروسته یې هره یوه کلمه په نستعلیق خط او کړکي قلم په خپلو کتابچو کې د کرسي خط له پاسه مشق او تمرین کړئ.

**کورنۍ دنده**
د پورتنۍ نمونې له مخې له نورو تورو سره د (ج) توری ترکیب له ټولو ځانګړتیا وو سره په یوه جمله کې په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق او بله ورځ یې ټولګي ته راوړئ.

**ځلورم لوست**

## له نورو تورو سره د (د) توري ترکيب

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه د نستعليق خط له اصولو سره سم په کړکي قلم د (د) توري پر ټکو ايښودلو او ترکيب وپوهيږي.

**پوښتنه**

کله مو په نستعليق خط او کړکي قلم په يوه څو توريزه کلمه کې له نورو تورو سره د (د) توری په ترکيبي ډول ليکلای دی؟



**فعاليت**

په کړکي قلم له نورو تورو سره د (د) توري په بېلابېلو کلمو کې د موقعيت په اړوند بحث وکړئ، وروسته يې په ژورې پاملرنې له پورتنی نمونې سره سم په خپلو کتابچو کې تمرين کړئ.

**کورنۍ دنده**

د کرسي خط پر مخ په کړکي قلم د (د) توری له پورتنی نمونې سره سم په خپلو کتابچو کې تمرين کړئ.

**پنځم لوست**

## له نورو تور سره د (ر) توري ترکیب

**موخه:** زده کوونکي به په نستعليق خط په یوازې او یا ترکیبي ډول د (ر) توري په خطاطۍ او ټکو ایښودلو وپوهیږي.

**پوښتني**

څه فکر کوئ چې د (ر) توری په ترکیبي ډول په کومو برخو کې خطاطي کیږي؟
ستاسو په اند د (ر) توری له څو ټکو جوړ شوی دی او د کرسي خط په کومه برخه کې خطاطي کیږي؟



**فعالیت**

د کرسي خط په مخ د نستعلیق خط له اصولو سره سم د (ر) توری د پورتنۍ جملې په کلمو کې په کړکي قلم مشق او تمرین کړئ.

**کورنۍ دنده**

په کلمو کې له نورو تورو سره د (ر) توري ترکیب ته پاملرنه وکړئ، وروسته یې په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ، بله ورځ یې ټولګي ته راوړئ.

## شپږم لوست

# له نورو تورو سره د (س) توري ترکيب

**موخه:** له نورو تورو سره د (س) توري له خطاطۍ، ښکلو ايښودلو او پر ترکيب به زده کوونکي وپوهيږي.

**پوښتنې**

څه فکر کوئ په لاندې جمله کې څو وارې د (س) توری له نورو تورو سره د کلمو په کومو برخو کې په ترکيبي ډول خطاطي شوی دی؟





**فعاليت**

پورتنۍ نمونې د کرسي خط له پاسه پر نستعليق خط او کړکي قلم مشق او تمرين کړئ.

**کورنۍ دنده**

د کرسي خط له پاسه له نورو تورو سره د (س) توري حرکت او ترکيب په کړکي قلم تمرين کړئ.

**اووم لوست**

## له نورو تورو سره د (ص) توري ترکیب

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط پر مخ او کړکي قلم د (ص) توري ترکیب له نورو تورو سره د ټکو ایښودلو پر بڼې حرکت او ترکیب وپوهیږي.

**پوښتنې**

کله مو د کرسي خط پر مخ د نستعلیق خط له اصولو سره سم د(ص) توری په څو توریزو کلمو کې خطاطي کړی دی؟

د لاندینۍ جملې په کلمو کې د (ص) توری په ترکیبي ډول په کومو برخو کې مشق شوی دی؟






**فعالیت**

په خپلو کتابچو کې د پورتنۍ جملې په هکله بحث وکړئ، وروسته یې د کرسي خط له پاسه په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

**کورنۍ دنده**

پورتنۍ جمله په کړکي قلم د کرسي خط له پاسه له نمونې سره سم په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

**اتم لوست**

## له نورو تورو سره د (ط) توري ترکیبونه

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه په کړکي قلم د یوې جملې په څو توریزو کلموکې د (ط) توري په حرکتونو اوترکیب و پوهیږي.

**پوښتنې**

آیا ویلای شئ چې د (ط) توری د څو توریزو کلمو په کومه برخه کې خطاطي کیږي؟
ستا سو په نظر په لاندې جمله کې د (ط) توری د کرسي خط په کومه برخه کې دی؟



**فعالیت**



په خپلو ډلو کې د (ط) توري د کلمو په پیل، منځ او پای کې په حرکتونو، ټکو اینښودلو او ترکیب خبرې وکړئ، وروسته پورتنۍ نمونې ته په کتو او کرسي خط ته په پاملرنې یې په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې تمرین کړئ.

**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونې د نستعلیق خط له اصولو سره سم په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې تمرین کړئ، بله ورځ یې ټولګي ته راوړئ.

**نهم لوست**

## له نورو تورو سره د (ع) توري ترکیب

**موخه:** زده کوونکي به د یوې جملې په څو توریزو کلمو کې د (ع) توري په ټکو ایښودلو او ترکیب وپوهیږي.

**پوښتنې**

په لاندیني نمونه کې په کړکي قلم د (ع) توري د ټکو ایښودلو حرکتونو او ترکیب په اړوند څه پوهیږي؟

په لاندې جمله کې د (ع) توری له نورو تورو سره په لومړي سر، منځ او اخر کې د ترکیب په اړوند څه ویلای شئ؟






**فعالیت**

د کرسي خط له پاسه په نستعلیق خط او کړکي قلم پورتنی نمونه په خپلو کتابچو کې د تختې له مخې مشق او تمرین کړئ.

**کورنی دنده**

له پورتنی نمونې سره سم په کړکي قلم له نورو تورو سره د (ع) توری ترکیب کړئ، وروسته یې د کرسي خط له پاسه په خود کار او یا پنسل قلم په خپلو کتابچوکې مشق او تمرین کړئ

**لسم لوست**

## له نورو تورو سره د (ف) توري ترکيبونه

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه د نستعليق خط له اصولو سره سم د کلمو په پيل، منځ او پای کې د (ف) توري ترکيب او خطاطي وپوهيږي.

**پوښتنه**

په لاندې نمونه کې د (ف) توري ترکيب له کومو تورو سره دی او څه ډول مشق شوی دی؟



**فعاليت**



له نورو تورو سره د (ف) توري د ترکيب په باب نستعليق خط ته پاملرنه وکړئ، وروسته يې د يوې کلمې په پيل، منځ او پای کې په پام کې ونيسئ او په کړکي قلم يې په خپلو کتابچو کې مشق او تمرين کړئ.

**کورنی دنده**

پورتنی نمونه په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې څو وارې تمرين کړئ.

**یوولسم لوست**

## له نورو تورو سره د (ق) توري يو ځای کېدل

**موخه:** زده کوونکي به په څو توریزو کلمو کې د(ق) توري ټکو ايښودل او حرکتونه زده او د (ق) توري ترکيب به په کرسي خط د نستعليق خط له اصولو سره سم وپوهيږي.

**پوښتنې**

د لاندې نمونې په اړوند څه پوهيږئ، څه ډول له نورو تورو سره ترکيب شوی دی؟
د يوې کلمې په پيل، منځ او پای کې د (ق) توري د بدلونو په اړوند څه ويلای شئ؟



**فعاليت**



د کرسي خط پر مخ په نستعليق خط پورتنۍ نمونه په يوه کلمه او جمله کې له نورو تورو سره پخپلو کتابچو کې په کړکي قلم تمرين کړئ.

**کورنۍ دنده**

پورتنۍ جمله په کړکي قلم څو وارې په خپلو کتابچو کې تمرين کړئ.

دوو لسم لوست

## له نورو تورو سره د (ک) توري ترکیب

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه په نستعلیق خط د (ک) توري پر ترکیب او د کلمو په پیل، منځ او پای کې په ټکو ایښودلو، خطاطی او بېلا بېلو حرکتونو وپوهیږي

**پوښتنې**

د (ک) توری څه ډول په یوه کلمه کې له نورو تورو سره خطاطي کوئ؟

د ( ک) توری په څو طریقو خطاطي کیږي؟



**فعالیت**



د کرسي خط له پاسه په نستعلیق خط د یوې جملې د کلمو په پیل او پای کې د (ک) توری په کشدار ډول له نورو تورو سره ټکو ایښودلو او خطاطی ته په پاملرنې سره پورتنی نمونه تمرین کړئ.

**کورنی دنده**

پورتنی نمونه په ژورې پاملرنې سره په کړکي قلم او یا پنسل د کرسي خط له پاسه پر نستعلیق خط تمرین کړئ.

دیارلسم لوست

## له نورو تورو سره د (ل) توري ترکیب

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه په نستعلیق خط د (ل) توري په ټکو ایښودلو او حرکتونو وپوهیږي.

**پوښتني**

د کلمې په پیل، منځ او پای کې د (ل) توري د مفرد ترکیب په هکله څه ویلای شئ؟
په لاندې جمله کې د (ل) توری د کلمې په کومه برخه کې د ترکیب او اتصال په بڼه خطاطي شوی دی؟



**فعالیت**

په خپلو ډلو کې د (ل) توری د کلمې په پیل، منځ او پای کې په ترکیب باندې بحث وکړئ، وروسته پورتنۍ نمونه په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې تمرین کړئ.

**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونه په کړکي قلم د کرسي خط له پاسه څو وارې تمرین کړئ، بله ورځ یې ټولګي ته راوړئ.

**څوارلسم لوست**

## له نورو تورو سره د (م) توري ترکیب

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه پر نستعلیق خط د کلمې په پیل، منځ او پای کې له نورو تورو سره د (م) توري په خطاطۍ، حرکتونو او ترکیب وپوهیږي.

**پوښتنه**

ستاسو په نظر د (م) توري ټکي څه ډول ایښودل او له کومو تورو سره د کلمې په پیل، منځ او پای کې ترکیب شوی دی؟



**فعالیت**



له نورو تورو سره د (م) توري په ترکیبي بڼه د کلمې په پیل، منځ او پای کې خبرې او بحث وکړئ، وروسته یې په کړکي قلم د کرسي خط له پاسه په نستعلیق خط په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

**کورنۍ دنده**

له نورو تورو سره د (م) توري ترکیب ته په پاملرنې سره، پورتنۍ جمله په نستعلیق خط په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

## پنځه لسم لوست

# له نورو تورو سره د (ن) توري ترکیب

**موخه:** د کرسي خط له پاسه په نستعلیق خط او کړکي قلم له نورو تورو سره د (ن) توري پر ټکو ایښودلو، خطاطی او حرکتونو به زده کوونکي وپوهیږي.



**پوښتنې**

د کلمو په پیل، منځ او پای کې له نورو تورو سره د لاندې نمونې په ترکیب شوو تورو کې څو حرکتونه لیدل کیږي؟

ستاسو په نظر د (ن) توری په مفرد ډول د کلمو په کومه برخه کې مشق کیږي؟





**فعالیت**

د کرسي خط له پاسه په نستعلیق خط او کړکي قلم د پورتنۍ جملې د کلمو په پیل، منځ او پای کې د (ن) توري ترکیبونه او حرکتونه څو وارې په خپلو کتابچو کې مشق کړئ.

**کورنۍ دنده**

د کرسي خط له پاسه په نستعلیق خط، کړکي قلم پورتنۍ نمونه څو وارې په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

**شپاړلسم لوست**

## له نورو تورو سره د (و) توري ترکیب

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه په نستعلیق خط او کړکي قلم له نورو تورو سره د (و) توري په ټکو ایښودلو، خطاطۍ او حرکتونو وپوهیږي.

**پوښتنې**

ستاسو په نظر د یوې څو توریزې کلمې په جوړښت کې د (و) توری په کومه برخه کې موقعیت لري؟

د یوې یا څو کلمو لرونکي جملې په جوړښت کې د (و) توري رول څه دی او څه اهمیت لري؟



**فعالیت**



پورتنۍ نمونه د کرسي خط له پاسه په نستعلیق خط او کړکي قلم په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونې د کرسي خط له پاسه په کړکي قلم په خپلوکتابچو کې تمرین کړئ.

اووه لسم لوست

## له نورو تورو سره د (هـ) توري ترکيب

**موخه:** زده کوونکي به دکرسي خط له پاسه په نستعليق خط او کړکي قلم له نورو تورو سره د (هـ) توري په حرکتونو او ترکيبونو وپوهيږي.

**پوښتنې**

کله مو د (هـ) توری په یوه کلمه کې له نورو تورور سره دحرکتونو او ترکيبونو له مخې خطاطی کړې ده؟

د پورتنۍ نمونې د کلمو په پيل، منځ او پای کې د (هـ) توري کومې بڼې ګورئ، څه شکل يې غوره کړی او څو ډوله (هـ) ليدل کيږي؟





**فعاليت**



د (هـ) توري د ترکيبونو او حرکتونو او د خطاطی په بېلا بېلو ډولونو يې خبرې وکړئ، وروسته پورتنۍ جمله د کرسي خط له پاسه په نستعليق خط او کړکي قلم په خپلو کتابچو کې تمرين کړئ.

**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونه په کړکي قلم څو وارې په خپلو کتابچو کې مشق او تمرين کړئ، بله ورځ يې ټولګي ته راوړئ.

اته لسم لوست

## له نورو تورو سره د (ی) توري ترکیب

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه په نستعلیق خط او کړکي قلم د یوې کلمې په پیل، منځ او پای کې د (ی) توري په ټکو ایښودلو، حرکتونو او ترکیب وپوهیږي.

**پوښتنه**

د څو توریزې کلمې په پیل، منځ او پای کې د (ی) توری په یوه جمله کې څنګه خطاطي کوئ؟



**فعالیت**



پورتنی تمرین د کرسي خط له پاسه په نستعلیق خط او کړکي قلم د تورو ترکیب ته په پاملرنې خطاطي کړئ.

**کورنۍ دنده**

د پورتنی نمونې د خپلو ځانګړتیاوو حرکتونو او ترکیبونوته په پاملرنې سره په یوه جمله کې په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

# دویم څپرکی

په شکسته نستعلیق خط د تورو د خطاطۍ بڼه، ټکو ایښودلو او ترکیب

## دشکسته نستعلیق خط د ټکو ایښودلو طریقه



**نولسم لوست**

## له نورو تورو سره د (ا، ب) تورو ترکیب

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه په نستعلیق خط او کړکي قلم له نورو تورو سره د (الف او ب) له ترکیب، خطاطی او ټکو ایښودلو سره بلد شي.

**پوښتنې**

ستا سو په آند شکسته خط له نورو خطونو سره څه توپیر لري؟
ستا سو په نظر په لاندې شکل کې (ا، ب) څه ډول لیکل شوي دي؟



**فعالیت**

پورتنۍ نمونه کرسي خط ته په پاملرنې سره خطاطی کړئ، مرکب توري یې دټکو ایښودلو او له نورو تورو سره ترکیبولو او د نستعلیق شکسته خط قاعدو ته په پاملرنې په کړکي قلم مشق او تمرین کړئ.

**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونه په کړکي قلم څو وارې په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ، بله ورځ یې ټولګي ته راوړئ.

شلم لوست

## له نورو تورو سره د (ج، د) تورو ترکیب

**موخه:** د کرسي خط له پاسه په شکسته او نستعلیق خط او کږکي قلم له نورو تورو سره د (ج، د) تورو په ترکیب، ټکو ایښودلو او خطاطۍ د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنې**

په لاندینیو کلمو کې د (ج، د) توري په ترکیبي ډول مشق شوي دي، د هغو نومونه واخلئ.
د هغو تورو چې په لاندینیو کلمو کې له (ج، د) تورو سره په ترکیبي ډول لیکل شوي دي، نوم‌ونه واخلئ؟



**فعالیت**

پورتني توري د کرسي خط له پاسه د شکسته نستعلیق خط قاعدو ته په پاملرنې سره په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونه په کږکي قلم څو وارې د کرسي خط له پاسه مشق او تمرین کړئ.

## یو ویشتم لوست

# له نورو تورو سره د (ر، س) تورو ترکیبر

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه په شکسته او نستعليق خط له نورو تورو سره د (ر، س) تورو په ترکیب وپوهیږي.

**پوښتنې**

ستاسو په نظر د شکسته خط ترکیبونه د نستعلیق خط له ترکیبونو سره څه توپیر لري؟
په لاندې نمونه کې څو توري له نورو توروسره په ترکیبي ډول مشق شوي دي؟





**فعالیت**



په شکسته نستعلیق خط د (ر، س) تورو د خطاطۍ په اړوند په خپل منځ کې بحث وکړئ، وروسته پورتنۍ نمونه د شکسته نستعلیق خط قاعدو ته په ژورې پاملرنې سره په کړکي قلم د کرسي خط له پاسه په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونې ته په ژورې پاملرنې سره څو توري په شکسته نستعلیق خط په کړکي قلم په خپلو کتابچوکې مشق او تمرین کړئ.

**دوه ویشتم لوست**

## له نورو تورو سره د (ص، ط) تورو ترکیب

**موخه:** زده کوونکي به د (ص، ط) تورو له خطاطۍ، ټکو اینښودلو سره په مفرد او ترکیبي ډول بلدتیا پیدا کړي.

**پوښتني**

په لاندینۍ نمونه کې کوم توري په شکسته نستعلیق خط له (ص، ط) تورو سره یو ځای خطاطي شوي دي؟

لاندې کلمې له کومو تورو څخه جوړې شوي دي؟





**فعالیت**



پورتنۍ نمونه د کرسي خط له پاسه په کړکي قلم له (ح، ا، و) تورو سره په ترکیبي ډول په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونې په شکسته نستعلیق خط په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

## درویشتم لوست

# له نورو تورو سره د (ع، ف) تورو ترکیب

**موخه:** زده کوونکي به په مفرد او ترکیبي بڼه د (ع، ف) تورو له خطاطۍ او ځکو ایښودلو سره آشنا شي.

**پوښتنې**

کله مو د (ع، ف) توري په ترکیبي بڼه مشق کړي دي؟

په لاندې نمونه کې کومې کلمې له (ع، ف) تورو سره په ترکیبي بڼه مشق او تمرین شوي دي؟



**فعالیت**

د پورتنۍ نمونې مفرد او مرکب توري د کرسي خط له پاسه په شکسته نستعلیق خط په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونې ته پاملرنه وکړئ، بیا هغه څو وارې په شکسته نستعلیق خط په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

## څلرویشتم لوست

# له نورو تورو سره د (ق، ک) تورو ترکیب

**موخه:** په شکسته نستعلیق خط، مرکب او مفرد شکل د (ق، ک) توري په کړکي قلم له خطاطۍ او ټکو ایښودلو سره به زده کوونکي بلد شي.

**پوښتنې**

ستاسو په آندلاندې توري یو له بل سره څه توپیر لري او څه ډول مشق شوي دي؟
پر شکسته نستعلیق خط د لاندې تورو د یو ځای کیدو په اړوند څه ویلای شئ؟




**فعالیت**

په خپلو ډلو کې د پورتنۍ نمونې په اړوند خبرې او بحث وکړئ، وروسته یې په خپلو کتابچو کې تمرین کړئ او بیا یې د ننداریې لپاره ټولګي ته راوړئ.

**کورنۍ دنده**

د کتاب په نمونو سربیره مفرد او مرکب توري په دوامداره توګه په یوه کلمه کې پر شکسته نستعلیق خط په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق اوتمرین کړئ.

## پنځه ویشتم لوست

# له نورو تورو سره د (ل، م، ن) تورو ترکیب

**موخه:** د کرسي خط له پاسه د شکسته نستعلیق خط قاعدو ته په پاملرنې سره د (ل، م، ن) تورو له خطاطۍ او ټکو ایښودلو سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنې**

څه فکر کوئ په پخوانیو ټولگیو کې له دې تورو سره بلد وئ او کله مو هغه تمرین کړي دي؟

ستا سو په نظر د لاندینیو کلمو په ترکیب کې ډېر کوم توري کارول شوي دي؟



**فعالیت**

پورتنۍ نمونه د کرسي خط له پاسه د شکسته نستعلیق خط له اصولو سره سم څو وارې په خپلو کتابچوکې مشق کړئ.

**کورنۍ دنده**

له خپلې خوښې سره سم پورتنۍ نمونه په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

**شپږ ویشتم لوست**

## له نورو تورو سره د (و، ه) تورو ترکیب

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه په شکسته نستعلیق خط د (و، ه) تورو له خطاطۍ او ټکو ایښودلو سره آشنا شي.

**پوښتنې**

څه فکر کوئ (و، ه) توري په شکسته نستعلیق خط او مرکب ډول څنګه خطاطي کیږي؟
کله مو کومه کلمه د کرسي خط له پاسه په شکسته نستعلیق خط په کړکي قلم مشق کړې ده؟



**فعالیت**



پورتنۍ نمونې د کرسي خط له پاسه په ژورې پاملرنې سره په خپلو کتابچو کې مشق کړئ، په خپلو تمرینونو کې باید پاملرنه وکړئ، تر څو وکولای شئ، هغه سم خطاطي کړئ.

**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونې په شکسته نستعلیق خط په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

**او ویشتم لوست**

## له نورو تورو سره د (ی) تورو ترکیب

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه په شکسته نستعلیق خط په مفرد اومرکب شکل د (ی) توري له خطاطۍ او ټکو ایښودلو سره بلد شي.

**پوښتنې**

ستاسو په نظر د (ی) توری په څو ډولو خطاطي او ټکي يې ایښودل کیږي؟

څه فکر کوئ، کوم توري په مرکب ډول مشق او تمرین شوي دي؟



**فعالیت**

پورتنۍ نمونه د کرسي خط له پاسه داسې ولیکئ چې توري په خپل ځای کې راشي د شکسته نستعلیق خط اصولو ته په پاملرنې يې پر کړکي قلم مشق او تمرین کړئ.

**کورنۍ دنده**

د (ی) توری د کرسي خط له پاسه د شکسته نستعلیق خط قاعدو ته په پاملرنې سره په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

# دريم څپرکی

## د کلمو په بېلابېلو موقعيتونو کې په نسخ خط د تورو د حرکتونو او ټکو اېښودلو طريقه

مفرد توري    د پيل توري    د منځ توري    د پای توري



## اته ویشتم لوست

# له نورو تورو سره د (ا) توري ترکیب

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه په کړکي قلم له مفردو تورو سره د کلمو په پیل، منځ اوپای کې په نسخ خط د (ا) توري په ټکو ایښودلو او خطاطی وپوهیږي.

**پوښتنې**

کله مو د کرسي خط له پاسه پر کړکي قلم او نسخ خط د (ا) توری تمرین کړی دی؟

د (ا) توري په لوړوالي کې څو ټکي مشق او لیکل شوي دي؟






**فعالیت**

د کرسي خط له پاسه په نسخ خط او کړکي قلم د (الف) توري د ټکو ایښودل مشق او تمرین کړئ.

**کورنی دنده**

پورتنۍ نمونې په ژورې پاملرنې سره په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

## نهه ویشتم لوست

# له نورو تورو سره د (ب) توري ترکیب

**موخه:** زده کوونکي به د کلمې په پیل، منځ او پای کې په مفردو تورو کې په نسخ خط د (ب) توري په ترکیبونو، حرکتونو او ټکو اېښودلو وپوهېږي.

**پوښتنې**

کله مو د نمونې په ډول په دې علامو د کرسي خط له پاسه مشق او تمرین کړی دی؟
ستاسو په نظر د (ب) توری د کلمو په پیل، منځ اوپای کې له نورو تورو سره څه ډول ترکیب کېږي؟






**فعالیت**

پورتنۍ جمله د کرسي خط له پاسه د نسخ قاعدې او اصولو ته په پاملرنې سره پر کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونې ته په ژورې پاملرنې سره په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین وکړئ.

## دیرشم لوست

# له نورو تورو سره د (ج) توري ترکیب

**موخه:** زده کوونکي به په نسخ خط د (ج) توري له ټکو ایښودنې او له نورو تورو سره په ترکیب وپوهیږي.

**پوښتنې**

کله مو د کرسي خط په مخ په نسخ خط د (ج) توری اندازه کړی اوټکي مو ورته ایښي دي؟
ستاسو په نظر ترکیب شوي توري د جملې په پیل او منځ کې څه ډول دي؟




**فعالیت**



د (ج) توري د ټکو ایښودلو او حرکتونو د ځانګړتیاوو او له نورو تورو سره یې د ترکیب په اړوند بحث وکړئ، وروسته هغه کلمې چې د (ج) توری په کې راغلی وي د کرسي خط په مخ اوکړکي قلم په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

**کورنۍ دنده**

پورتنیو نمونو ته پاملرنه وکړئ، وروسته یې په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

**یو دیرشم لوست**

## له نورو تورو سره د (د) توري ترکیب

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه په نسخ خط د (د) توري له ټکو اېښودلو او حرکتونو سره بلد شي.

**پوښتنې**

کله مو د (د) توری له نورو تورو سره ترکیب کړی د کرسي خط پر مخ مو په نسخ خط خطاطي کړی دی؟

ستاسو په نظر په لاندې جمله کې د (د) توری له نورو تورو سره خطاطي شوی دئ؟




**فعالیت**



په خپلو کتابچو کې د (د) توري د ټکو اېښودلو،حرکتونو او له نورو تورو سره د کلمو د بېلا بېلو موقعیتونو په اړوند په خپلو منځو کې بحث وکړئ، وروسته هر فعالیت په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې خطاطي کړئ.

**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونه په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

**دوه دیرشم لوست**

## له نورو تورو سره د (ر) توري ترکیب

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه په نسخ خط د (ر) توري له ټکو اېښودلو حرکتونو او له نورو تورو سره پر ترکیب وپوهېږي.

**پوښتنې**

ستاسو په نظر د (ر) توری د کلمو په کومه برخه کې له نورو تورو سره یو ځای مشق کیږي؟
څه فکر کوئ په لاندینۍ نمونه کې د (ر) توری په نسخ خط له نورو تورو سره څه ډول ترکیب شوي دي؟





**فعالیت**

د (ر) توري ټکو اېښودلو ته په پاملرنې سره یې د کرسي خط له پاسه پر نسخ خط او کړکي قلم په خپلو کتابچو کې خطاطي کړئ.

**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونه د نسخ خط د ځانګړتیاوو په پام کې نیولو سره په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

**درې دیرشم لوست**

## له نورو تورو سره د (س) توري ترکیب

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط پر مخ په نسخ خط د (س) توري له ټکواېښودلو، حرکتونو، پر کړکي قلم له خطاطۍ سره بلد شي.

**پوښتنې**

ستاسو په نظر د (س) توری له نورو تورو سره څه ډول په ترکیبي توګه مشق او خطاطي کېږي؟

ایا د (س) توري د خطاطۍ او له نورو تورو سره یې د ترکیب په اړوند څه ویلای شئ؟






**فعالیت**

په خپلو ډلو کې د (س) توري د کلمو په بېلا بېلو بر خوکې د ترکیب په اړوند بحث وکړئ، وروسته پورتنۍ بیت په نسخ خط د کرسي خط له پاسه مشق کړئ.

**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونه په کړکي قلم څو وارې په خپلوکتابچو کې مشق او تمرین کړئ

## څلور دیرشم لوست

# له نورو تورو سره د (ص) توري ترکیب

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط په مخ او نسخ خط له ټکو اېښودلو او له نورو تورو سره پر ترکیب وپوهیږي.

**پوښتنې**

کله مو د (ص) توری له نورو تورو سره په کړکي قلم په کلمو کې پر نسخ خط مشق کړي دی؟

څه فکر کوئ، د (ص) توری د کلمو په کومو برخو کې په پیوسته ډول مشق شوي دی؟






**فعالیت**

د کلمو په بېلا بېلو بر خو کې د (ص) توري ټکو ایښودلو اوترکیب ته ژوره پاملرنه وکړئ، وروسته پورتنۍ نمونې په کړکي قلم پخپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونه د نسخ خط ځانګړتیاووته په پاملرنې په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

**پنځه دير شم لوست**

## له نورو تورو سره د (ط) توري ترکيب

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط په مخ او نسخ خط له نورو تورو سره په ټکو اېښودلو او ترکيبونو وپوهيږي.

**پوښتني**

ستاسو په نظر د (ط) توری د کلمو په کومو برخو کې په ترکيبي ډول مشق کېږي؟
څه فکر کوئ چې د (ط) توری څو ټکي لري، د کلمو په کومو برخو کې په يوازې ډول مشق کيږي؟






**فعاليت**

پورتنی نمونې ته ژوره پاملرنه وکړئ، وروسته يې په کړکي قلم د کرسي خط له پاسه مشق کړئ.

**کورنی دنده**

د (ع) توری د کلمو په پيل، منځ او آخر کې په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق او تمرين کړئ، بله ورځ يې ټولګي ته راوړئ.

## شپږ دیرشم لوست

# له نورو تورو سره د (ع) توري ترکیب

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه په نسخ خط د (ع) توري له ټکواېښودلواوترکیب سره بلد شي.

**پوښتنې**

څه فکر کوئ د (ع) توری د کلمو په منځ کې څه ډول مشق کېږي؟
ستاسو په نظر د (ع) توری د کلموپه بېلا بېلو برخو کې څه ډول خطاطي کېږي؟




**فعالیت**

پورتنۍ نمونې ته ژوره پاملرنه وکړئ، وروسته یې په کړکي قلم د کرسي خط له پاسه مشق کړئ.

**کورنۍ دنده**

د (ع) توری د کلمو په پیل، منځ او آخر کې په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ، بله ورځ یې ټولګي ته راوړئ.

**اووه دیرشم لوست**

## له نورو تورو سره د (ف) توري ترکیب

**موخه:** زده کوونکي به د (ف) توري په ټکو ایښودلو او د نسخ خط له اصولو سره سم په ترکیبونو وپوهیږي.

**پوښتنې**

ستاسو په اند د (ف) توری د کرسي خط په کومه برخه کې دی او څو ټکي لري؟
کله مو په کړکي قلم د نسخ خط له اصولو سره سم د (ف) توري ټکي ایښي دي






**فعالیت**

پورتنۍ نمونه هغه ترکیبونو ته په پاملرنې په کړکي قلم د کرسي خط له پاسه په خپلو کتابچو کې مشق کړئ.

**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونه په کړکي قلم څو وارې په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ، بله ورځ یې ټولګي ته راوړئ.

اته دیرشم لوست

## له نورو تورو سره د (ق) توري ترکیب

**موخه:** زده کوونکي به د (ق) توري په ټکو اېښودلو او پر نسخ خط به يې له نورو تورو سره پر ترکیبونو وپوهېږي.

**پوښتنې**

ستاسو په نظر د (ق) توري ټکي څه ډول اېښودل کيږي او په څو طريقو خطاطي کېږي؟
څه فکر کوئ د (ق) توری د کلمو په کومو برخو کې په ترکیبي ډول لیکل کېږي؟




**فعالیت**

د (ق) توري ټکو اېښودلو او د کلمو په بېلا بېلو برخو کې ترکیب ته په پاملرنې يې د کرسي خط له پاسه په کړکي قلم مشق کړئ.

**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونه د کرسي خط له پاسه په کړکي قلم څو وارې په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

**نهه دیرشم لوست**

## له نورو تورو سره د (ک) توري ترکیب

**موخه:** زده کوونکي به د (ک) توري د ټکو اېښودلو له بڼې، د کرسي خط پر مخ او نسخ خط له اصولو سره سم په ترکیبونو وپوهیږي.

**پوښتنې**

په لاندینیو نمونو کې د (ک) توری د کلمو په کوموځایونو کې له نورو تورو سره ترکیب شوی دی؟

د (ک) توري په اندازه کولو او ټکو اېښودلو کې څه ډول ټکي کارول شوي دي




**فعالیت**



د ټکو ایښودلو، حرکتونو د (ک) توري له تورو سره د ترکیبونو په اړوند په خپل منځ کې بحث وکړئ، وروسته پورتنۍ نمونې په کړکي قلم د کرسي خط له پاسه مشق کړئ.

**کورنۍ دنده**

پورتنۍ جمله په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې د کرسي خط له پاسه مشق او تمرین کړئ.

**څلوېښتم لوست**

## له نورو تورو سره د (ل) توري ترکیب

**موخه:** زده کوونکي به د (ق) توري په ټکو ایښودلو او پر نسخ خط به یې له نورو تورو سره په ترکیبونو وپوهیږي.

**پوښتنې**

په لاندې نمونې کې څه شیان ګورئ؟

کله مو د (ل) توری له نورو تورو سره یو ځای مشق کړی دی؟






**فعالیت**

پورتنۍ نمونې ته ژوره پاملرنه وکړئ، وروسته یې د کرسي خط له پاسه په نسخ خط اوکړکي قلم مشق کړئ.

**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونې په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې څو وارې مشق او تمرین کړئ

## يو ځلوېښتم لوست

# له نورو تورو سره د (م) توري ترکيب

**موخه:** زده کوونکي به د (م) توري له ټکو ايښودلو او له نورو تورو سره د کرسي خط له پاسه په نسخ خط مشق وکړاى شي.

**پوښتنې**

په لاندې نمونه کې (م) د نورو تورو په کومه برخه کې ترکيب شوى دى؟
کله مو د (م) تورى له نورو تورو سره يو ځاى خطاطي کړى دى؟






**فعاليت**

د (م) توري ټکواېښودلو او له نورو تورو سره يې ترکيب ته پر توجه کولو پورتنۍ جمله د کرسي خط له پاسه پر کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق کړئ.

**کورنۍ دنده**

د (م) توري حرکتونه او ترکيبونه په پورتنۍ نمونه کې وګورئ، بيا يې تمرين کړئ

دوه څلوېښتم لوست

## له نورو تورو سره د (ن) توري ترکیب

**موخه:** زده کوونکي به د (ن) توري له ټکو ایښودلو او له نورو تورو سره د کرسي خط له پاسه په نسخ خط وپوهیږي.

**پوښتنې**

په لاندې نمونه کې د (ن) توري ترکیبونه د کلمو په کومو برخو کې ښکاري؟
ستاسو په نظر په کلمو کې په کړکي قلم د (ن) د توري خطاطي څنګه ګورئ؟






**فعالیت**

په پورتنۍ نمونه کې د (ن) توري موقعیت ته په کلموکې ژوره پاملرنه وکړئ، وروسته په کړکي قلم د کرسي خط له پاسه مشق کړئ.

**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونه څو وارې په کړکي قلم په خپلو کتابچوکې مشق او تمرین کړئ.

**درې څلوېښتم لوست**

## له نورو تورو سره د (و) توري ترکيب

**موخه:** زده کوونکي به د (و) توري له ټکو ايښودلو او له نورو تورو سره د کرسي خط له پاسه په نسخ خط په مشق وپوهيږي.

**پوښتنې**

ستاسو په نظر د (و) توری څو ټکي لري، د کلمو په کومه برخه کې به يې په ترکيبي ډول مشق کړئ؟

کله مو د (و) توری په نسخ خط او کړکي قلم خطاطي کړی دی؟





**فعاليت**

د پورتنی نمونې په اړوند په خپل منځ کې بحث وکړئ، وروسته هر يو د کرسي خط له پاسه په کړکي قلم مشق کړئ.

**کورنۍ دنده**

پورتنی جمله په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې څو وارې مشق او تمرين کړئ، بيا يې ټولګي ته راوړئ.

## څلور څلوېښتم لوست

# له نورو تورو سره د (هـ، ه) توري ترکیب

**موخه:** زده کوونکي به د کرسي خط له پاسه په نسخ خط د (هـ) توري په ټکو اېښودلو او له نورو تورو سره په ترکیبونو وپوهیږي.

**پوښتني**

کله مو تر اوسه د (هـ) توري له دوه ډوله ټکو ایښودلو سره په نسخ خط مشق کړی دی؟

څه فکر کوئ د (هـ) توری له نورو تورو سره څنګه یو ځای خطاطي کیږي؟






**فعالیت**

پورتنۍ نمونې ته ژوره پاملرنه وکړئ، وروسته یې پر نسخ خط په خپلو کتابچوکې مشق کړئ.

**کورنۍ دنده**

پورتنۍ جمله په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې څو وارې مشق او تمرین کړئ.

## پنځه څلوېښتم لوست

# له نورو تورو سره د (ی) توري ترکیب

**موخه:** زده کوونکي به د (ی) توري پر ټکو ابښودلو او له نورو تورو سره د نسخ خط په ترکیبونو وپوهیږي.

**پوښتنې**

ستاسو په نظر د (ی) توري ټکي څنګه ابښودل شوي او څه ډول له نورو تورو سره ترکیب شوی دی؟

څه فکر کوئ د (ی) توری څو ډوله خطاطي کیږي؟






**فعالیت**

پورتنۍ نمونه په کړکي قلم د کرسي خط له پاسه په نسخ خط په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ.

**کورنۍ دنده**

پاسنۍ سرمشق په کړکي قلم باندې ولیکئ او ټولګي ته یې راوړئ.

# کتابت

**موخه:** زده کوونکي به د خطاطۍ په بېلابېلو طریقو او د کتابت پر قاعدو لیکل او بېلا بېلو کلمو، دکرسي خط پر مخ له نستعلیق، نسخ او شکسته نستعلیق خط سره بلد شي.

**پوښتنې**

څه فکر کوئ د خطاطۍ د قاعدو، له بېلا بېلو قلمونو، د کرسي خط له پاسه خطاطۍ سره بلدتیا لرئ؟

په لاندې مشق کې څو ډوله خطونه وینئ؟



**فعالیت**



په پورتنیو نمونو کې د کتابت خطاطۍ قواعد او اصول په درې ډوله (نستعلیق، نسخ او شکسته نستعلیق) ښودل شوي دي. پورتنیو نمونو ته په ځیر وګورئ، وروسته یې په کړکي قلم او خودکار په خپلو کتابچو کې خطاطي کړئ.

**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونه په کړکي قلم په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ بله ورځ یې ټولګي ته راوړئ.

## اووه څلوېښتم لوست

# پر نستعلیق خط د چلیپا لیکل

**موخه:** زده کوونکي د خطاطی په بیلابیلو طریقو چلیپا لیکنې او په کږ کې قلم د نستعلیق خط له لیکلو سره بلد شي.

**پوښتنې**

په لاندې نمونه کې کوم ډول خطونه ګورئ؟

ستاسو په نظر په لاندې نمونه کې څو کلمې خطاطي شوي دي؟



**فعالیت**

پورتنۍ نمونه وګورئ وروسته یې د کرسي خط له پاسه د هغه له مخې په خپلو کتابچو کې مشق کړئ.

**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونې ته پاملرنه وکړئ، وروسته یې په کږکي قلم په خپلو کتابچو کې تمرین کړئ، بله ورځ یې ښوونکي ته راوړئ.

اته څلوېښتم لوست

## د تور مشق دخطاطۍ طریقه

**موخه:** زده کوونکي به د تور مشق دخطاطۍ په اصولو او په کړکي قلم د نستعلیق خط له لیکلو سره بلد شي.

**پوښتنې**

په لاندې نمونه کې څه وینئ؟

کله مو کلمې دتور مشق په بڼه په نستعلیق خط او کړکي قلم په یوه پاڼه کې تمرین کړي دي؟



**فعالیت**

پورتنۍ نمونې ته ژوره پاملرنه وکړئ او وروسته یې له نمونې سره سم په خپلو کتابچو کې مشق کړئ.

**کورنۍ دنده**

پورتنۍ نمونه یو وار بیا له ټولو ځانګړتیا وو سره په خپلو کتابچو کې مشق کړئ، بله ورځ یې ټولګي ته راوړئ.

# دویمه برخه
# د حسن خط د تدریس لارښود

## لومړی لوست

### ۱مخ

**د تدریس وخت (دوه درسي ساعتونه)** **لومړی ساعت**

| | | |
|---|---|---|
| د لوست سر لیک | په نستعلیق خط له نورو تورو سره د (الف) توري ترکیب | |
| عمومي موخې | په نستعلیق خط د الف توري له نورور تورو سره په ټکو ایښودلو، د قلم په حرکتونو او خطاطۍ به زده کوونکي وپوهیږي | |
| د زده کړې موخې<br>- پوهنیزې<br>- مهارتي<br>- ذهنیتي | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>- زده کوونکي به له نورو تورو سره د الف توري په ټکو ایښودلو، حرکتونو او د کرسي خط له پاسه په نستعلیق خطاطۍ باندې وپوهیږي.<br>-زده کوونکي به د نستعلیق خط له اصولو سره سم له نورو تورو سره د الف توري په ټکو ایښودلو او حرکتونو باندې وپوهیږي<br>- زده کوونکي په نستعلیق خط د الف توري له حرکتونو او خطاطۍ سره مینه پیدا کړي. | |
| د تدریس لارښود | ډله ییز فعالیتونه، ځانګړي او ډله ییز فعالیتونه، پوښتنې او ځوابونه | |
| دتدریس وسایل | کتاب، کتابچه، کړکي قلم، پنسل، پنسل‌پاک، تباشیر، مشواڼي، خط کش، قط زن | |
| د ارزونې لاره | د خپل ډاډ تر لاسه کولو په موخه له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړئ | |
| لومړني فعالیتونه | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، د نوې کال مبارکي، د پنځم ټولګي د درسي کتاب یادونه او له نوي لوست سره یې اړیکې ورکول | ۵ دقیقې |
| | انګیزوي پوښتنې<br>کله مو د کرسي خط له پاسه په نستعلیق خط او کړکي قلم له نورو تورو سره د الف تورى په ترکیبي بڼه خطاطي کړې ده؟ | ۵ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | مدت زمان |
|---|---|
| • په نستعلیق خط او کړکي قلم له نورو تورو سره د الف توري د حرکتونو په اړوند زده کوونکو ته معلومات ورکړئ<br>• په نستعلیق خط او کړکي قلم له نورو تورو سره د الف توري د حرکتونو په باب زده کوونکو ته معلومات ورکړئ<br>• زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې له نورو تورو سره د الف توری څو وارې په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ<br>• د دوی تر سره شوي کارونه اصلاح او پوښتنو ته یې ځوابونه ورکړئ<br>• بشپړ شوي کارونه یې راټول او وارزوئ<br>• له نورو تورو سره د الف توري ترکیب په کړکي قلم زده کوونکو ته عملاً ور زده کړئ | ۳۵ دقیقه |

**کورنۍ دنده**

د لومړي لوست جمله په خپلو کتابچو کې څو وارې مشق او تمرین کړئ

**اضافي معلومات**

ښاغلی ښوونکیه! له نورو تورو سره د الف توري یو ځای ترکیب زده کوونکو ته پر تختې توضیح کړئ. له نورو سره د الف توري ټکو ایښودلو د کړکي قلم پر څوکه لومړۍ حرکت و رکړئ، بیا د ښي پلو په څوکه یوه نیمه دایره رسم کړئ، دریم حرکت د کړکي قلم د ښي پلو په څوکه حرکت ورکړئ، وروسته د الف توری ورسره یو ځای یا وصل کړئ. د لومړي لوست په جمله کې د الف توري دوه ډوله حرکتونه لري، ښه به وي لومړی هغه ته پاملرنه وکړئ، څکه دا خط په اصولو او قاعدو ولاړ دی، دا خط د ښکلا له پلوه ډیر ښکلی خط دی، په ځای خبره ده چې دا خط یې د اسلامي خطونو د ناوې په نوم یاد کړی دی. چې د کړکي قلم په واسطه ښکلی لیکل کیږي.

## اوه ویشتم لوست

## ۲۹ مخ

**د تدریس وخت (دوه درسي ساعتونه)** **لومړی ساعت**

| | |
|---|---|
| د لوست سر لیک | له نورو تورو سره د (ی) توري په نستعلیق خط ترکیب |
| عمومي موخې | زده کوونکي به په شکسته نستعلیق خط له نورو تورو سره د (ی) توري په ټکو ایښودلو او خطاطۍ وپوهیږي |
| د زده کړې موخې<br>- پوهنیزې<br>- مهارتي<br>- ذهنیتي | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>- زده کوونکي به په شکسته خط په مفرد او مرکب ډول د (ی) توري په خطاطۍ وپوهیږي<br>- زده کوونکي به د (ی) توری له نورو تورو سره په کړکي قلم له خطاطۍ او ټکو ایښودلو سره بلد شي.<br>- زده کوونکي به له نورو تورو سره د (ی) توري له ټکو ایښو دلو او خطاطۍ سره مینه پیدا کړي |
| د تدریس لارښود | ځانګړي او ډله ییز فعالیتونه، پوښتنې او ځوابونه |
| دتدریس وسایل | کتاب، کتابچه، کړکي قلم، پنسل، پنسل پاک، تباشیر، مشوانۍ، خط کش، قط زن |
| د ارزونې لاره | د خپل ډاډ تر لاسه کولو لپاره له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړئ |

| | | |
|---|---|---|
| لومړني فعالیتونه | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل او دتېر لوست یادونه او له نوې لوست سره یې اړیکي ورکول | ۵ دقیقې |
| | انګیزوي پوښتنې<br>کله مو د (ی) توری پر شکسته خط او کړکي قلم په مفرد او مرکب ډول ترکیب کړی دی؟ | ۵ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | وخت |
| --- | --- |
| • زده کوونکو ته د شکسته خط په اړوند معلومات ورکړئ<br>• زده کوونکي په شکسته نستعلیق خط د الفبا تورو په مفرد او مرکبه بڼه او کړکي قلم د خطاطۍ پر ډول وپوهوئ.<br>• د الفبا تورو لیکل په شکسته خط او د ټکو ایښودلو بڼه زده کوونکو ته ور زده کړئ<br>• د کرسي خط له پاسه په شکسته خط او کړکي قلم د کلمو خطاطي زده کوونکو ته ور زده کړئ<br>• د ښو کارونو د تر سره کولو له امله هغوی وهڅوئ | ۳۵ دقیقې |

**کورنۍ دنده**

پنځه ویشتم لوست د کتاب له مخې په خپلو کتابچو کې مشق او تمرین کړئ

**اضافي معلومات**

شکسته خط (شکسته نستعلیق)

له هغه وروسته چې نستعلیق خط رامنځ ته شو، لږ لږ یې د ډیرې کارونې او چټکتیا له امله نوې بڼه ځانته خپله کړه، لکه چې محقق او ثلث خطونه چې له نازک خط ریحان څخه او هم له کوچني او نري خط (رقاع) او بیا له نري خط (غبار) څخه رامنځ ته شو.

په دې یې هم بسته ونه کړه، د دې لپاره چې چټکه لیکنه تر لاسه شي، د توقیع، رقاع خطونو او د شکسته تعلیق خطونه هم را پیدا شول چې وروستي خط وکولای شول په چټکۍ سره ځینې مفصلې کلمې متصلې ولیکي. د همدې اصل په پام کې نیولو سره تعلیق او نستعلیق شکسته رواج او دود شو، له شکسته خط په شعر او خط لیکلو کې ګټه واخیستل شوه.

## نهه وېشتم لوست

## ۳۲ مخ

**د تدریس وخت (دوه درسي ساعتونه)** **لومړی ساعت**

| د لوست سر لیک | له نورو تورو سره د (ب) توري ترکیب | |
|---|---|---|
| عمومي موخې | زده کوونکي به له نورو تورو سره پر نسخ خط د (ب) توري په ټکو ایښودلو او خطاطۍ پوه شي. | |
| د زده کړې موخې<br>- پوهنیزې<br>- مهارتي<br>- ذهنیتي | له زده کوونکو څخه هیله کېږي چې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>- زده کوونکي به په نسخ خط او کړکي قلم د (ب) توري په ټکو ایښودلو او خطاطۍ وپوهیږي<br>- زده کوونکي به په نسخ خط او کړکي قلم د (ب) توری له نورو تورو سره په ترکیب، ټکو ایښودلو او خطاطۍ پوه شي<br>- زده کوونکي به له نورو تورو سره د (ب) توري له ترکیب او ټکو ایښودلو او خطاطۍ سره مینه پیدا کړي | |
| د تدریس لارښود | ډله ییز او ځانګړي او ډله ییز فعالیتونه، پوښتنې او ځوابونه | |
| دتدریس وسایل | کتاب، کتابچه، کړکي قلم، پنسل، پنسل‌پاک، تباشیر، مشواڼي، خط کش، قط زن | |
| د ارزونې لاره | د خپل ډاډ تر لاسه کولو لپاره له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړئ | |
| لومړني فعالیتونه | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، دتېر لوست یادونه او له نوي لوست سره یې تړاو ورکول او په نوي لوست پیل کول. | ۵ دقیقې |
| | انګیزوي پوښتنې<br>کله مو په نسخ خط توری او یا کلمه خطاطي کړیده؟ | ۵ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | وخت |
|---|---|
| • په نسخ خط د خطاطۍ په اړوند زده کوونکو ته معلومات ورکړئ<br>• د الفبا تورو د جوړښت او بڼې په اړوند په نسخ خط د کتاب له مخې زده کوونکو ته معلومات ورکړئ<br>• د کرسي خط پر مخ د (ب) توري د مرکبونو، خطاطۍ او ټکو ایښودلو په اړوند زده کوونکو معلومات ورکړئ<br>• په کړکي قلم د نسخ خطاطۍ په اړوند له زده کوونکو سره مرسته وکړئ<br>• د دوی کارونو ته ارزښت ورکړئ او د هغه ارزونه وکړئ | ۳۵ دقیقې |

**کورنۍ دنده**

په نسخ خط د (ب) توری د کتاب له مخې مشق او تمرین کړئ.

## ۵۱ مخ

د تدریس وخت (دوه درسي ساعتونه) لومړی ساعت

| | |
|---|---|
| د لوست سر لیک | د تور مشق د خطاطۍ طریقه |
| عمومي موخې | زده کوونکي به په پنځ خط د تور مشق له خطاطۍ سره بلد شي. |
| د زده کړې موخې<br>- پوهنیزې<br>- مهارتي<br>- ذهنیتي | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>- زده کوونکي به په کړکي قلم او نستعلیق خط د تور مشق په خطاطۍ وپوهیږي<br>- زده کوونکي به په کړکي قلم او نستعلیق خط د کلمو له لیکلو سره بلدتیا پیدا کړئ<br>- زده کوونکی به په کړکي قلم او نستعلیق خط د تور مشق له خطاطۍ سره مینه پیدا کړي |
| د تدریس لارښود | ځانګړي او ډله ییز فعالیتونه، پوښتنې او ځوابونه |
| دتدریس وسایل | کتاب، کتابچه، کړکي قلم، پنسل، پنسل‌پاک، تباشیر، مشوانۍ، خط کش، قط زن |
| د ارزونې لاره | د خپل ډاډ تر لاسه کلوول لپاره له زده کوونکو څخه پوښتنې کوي |

| | | |
|---|---|---|
| لومړني فعالیتونه | سلام اچول، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، د کورنۍ دندې کتنه او اصلاح، د تېر لوست یادونه او له نوي لوست سره اړیکې ورکول او په نوي لوست پیل کوي | ۵ دقیقې |
| | انګیزوي پوښتنې<br>آیا په کړکي قلم موکلمې په نستعلیق خط د تور مشق په بڼه تمرین کړې دي؟ | ۵ دقیقې |

<table>
<tr><td>

**د ښوونکي فعالیتونه**

• زده کوونکي به په نستعلیق خط او کړکي قلم د تور مشق په خطاطۍ وپوهیږي

• زده کوونکي دې په نستعلیق خط د کتاب له مخې کلمې په تختې د تور مشق په بڼه ولیکي

• زده کوونکي به په کړکي قلم او نستعلیق خط د تور خط مشق ولیکلای شي

• کارونه یې په دریو برخو ووېشئ او هغه ارزیابي کړئ

</td><td>وخت<br>۳۵ دقیقې</td></tr>
<tr><td colspan="2"></td></tr>
</table>

**اضافي معلومات**

ښاغلی ښوونکیه! زده کوونکي د خطاطۍ د بېلا بېلو طریقو او ښکلا لیکنې سره آشنا کړئ، له دې جملې څخه یو تور مشق دی، دا له یوه مخ مشق څخه عبارت دی، مثلاً: د ثلث خط غټ لیکل شوی دی. او په مخ کې یې فاصله ډکه کړې ده، یعنې دا هم د سیا مشق یوه برخه ده، نور څه نه دي.

دا ډول خطاطي د لاس د حرکتونو په سمولو او آزادۍ او د خطاطۍ په ښکلا او ښیګڼه کې ډیره مرسته کوي، په مرسته یې زده کوونکي په کړکي قلم په یوه مخ کې ډېر مشق کوي چې له ښکلا لیکنې سره مرسته کوي، زده کوونکي په کړکي قلم او نستعلیق خط په جملو کې د کلمو خطاطۍ ته متوجه کېږي او د تورو او کلمو په یوځای کولو او خطاطۍ د کرسي خط له پاسه متوجه کېږي او په عملي ډول ور باندې کار کوي، نستعلیق خط د یو ډول اصولو او قاعدو لرونکی دی چې هغې ته په پاملرنې سره زده کوونکي له ښکلا لیکنې سره بلدیږي، تر څو کلمې او جملې سمې او ښکلې خطاطي کړي.

**ښاغلی ښوونکیه! د هر لوست لپاره د ځانګړي پلان له لیکلو ډډه شوې ده، تاسې کولای شئ چې له پورتني پلان څخه په ګټې اخېستلو سره په ټولو لوستونو کې ګټه واخلئ.**

**یادونه: هغه درسونه چې ډېر وخت نیسي، کولای شئ هغه په دریو درسي ساعتونو کې تدریس کړئ.**